تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات


شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید اکاخیل باباصاحب


دوسرا حصہ


ناشر

مدرسۃ حدیقۃ الاحناف

# مسئلة سماع الموتى :

## التحقيق في سماع الموتى :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ۔ وَمَا أَنتَ بِهَادِي الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ﴾ ( سورة النمل آيت : ۸۰-۸۱).

بله مسئله د سماع الموتى ده دا مسئله ما مخکې کورسونو د علم مناظرې کې ما زيرِ بحث نه ده ګرځولې او د هغې لويه وجه داده چې په کومه مسئله کې صحابه کرام اختلاف ولري نو اصحابي کالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم.

بيا که هر جماعت هر صحابي پسې لاړ شي نو احد الجانب آخر لره په کې د ضلال او د زيغ نسبت نه شي کولې او نه جائز دي چې وي کړي زمونږ معاصرينو علماو او مشائخو کې ځومره حنفي حضرات څه خو ساکتين دي فقط په دغه لحاظ باندې چې بيا زما طالبان کميږي هغه څه چې قائلين دي په حق باندې نو هغوي بيا رفع اليدين آمين بالجهر ځو فروعي مسائلو ته زور ورکړي کوم علماء چې عقيده د اهلسنت پيژني او د هغې پر چار کوي نو هغوي بيا نور مسائل د اهل حديثو اشاعتيانو چې دا ستاسو په وړاندې مونږ زير بحث وګرځول هغه يوې ته هم اشاره نه کوي زيات نه زيات مسئله د سماع الموتى کې وننبخلي عوامو او طالبانو ته ذهن کې دا واچوي چې ګني پنجپيريان اشاعتيان او اهل حديث دا ګمراه په دې دي چې دوي د سماع الموتى منکر دي نو دا نظر غلط نظر دي.

د سماع الموتى مسئله اختلافي له زمانې د صحابه کرامو نه وه او کومه مسئله چې صحابه کرام هغې کې اختلاف ولري هر جانب على الحق وي مسئله د سماع الموتى کې مثبتين د سماع الموتى هغه هم په حق باندې دي هغه قول د محققينو دي هغه قول د اکثرينو دي او کوم چې نافيين د سماع الموتى دي هغوي هم په حقه باندې دي ځکه هغوي د پاره اقوى د مقتديانو نه بې بي عائشه رضي الله عنها ده چې هغه په مسئله د سماع الموتى کې د نفي قائله ده اګر که عبد الحي لکهنوي رحمه الله عبارت په آخر ورقاتو کې چې زه به يې تاسو ته وروسته نقل کړم چې هغه بي بي عائشه رضي الله عنها لره رجوع ثابتوي قول د مثبتينو ته خو قول

معروف نه دي دغه خلاصه مقصد مې دا دی چې دا مسئله د سماع الموتی د دومره اهمو مسائلو نه نه ده او په دې کې دې احد الجانب آخر لره د ګمراه نسبت و نه کړي ځکه چې په دې کې اختلاف او سني نه دي د زمانې د صحابه کرامو نه دي.

پاتې شو أئمه چې کوم دي هغوي نه په دې کې د اثبات او د نفي څه خاص ذکر نشته دي حنفي فقه کې ابن الهمام د سماع الموتی نه منکر دي او په کلکه انکار کوي او هغه دا په امامنا باندې تپلې ده چې دا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مسلک دي.

نو دغه نسبت چې ابن همام امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ ته د نفي د سماع کوي دغې کې دې حق ته نه دي رسیدلې امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ تصریحات د نفي د سماع نه لري فقط هغه یوه خبره کړې ده هغه دا چې یو سړي قسم وخوړ چې زه به مثلاً زید سره خبرې نه کومه او هغه مړ شو بعد الوفات یې له هغه سره خبرې وکړي نو دې حانث دي که حانث نه دي.

احناف وایي دې نه حانث کیږي دا د احنافو یوه جزیه شته ټولو متونو شروحو د فقهې او فتاوو را اخیستې ده دې ځای نه ابن همام ذهاب کوي چې ځکه نه حانث کیږي چې دغه مړي څه اوري نه نو ده ګویا کې جماد سره خبرې کړې دي هغه زید چې په خبرو پوهیدو نو دا هغه زید نه دي نو زید د ده خبره اوریدلې نه ده نو دې پرې حانث نه ده.

شاه انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ هغه په ابن همام باندې سخت رد کوي په دغه ځای باندې او وایي چې دې نسبت د نفي د سماع الموتی امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ لره کوي دا صحیح نه دي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ نه قول د اثبات او د نفي د هیڅ نه دي راغلې ته د دغې جزیې نه استدلال کوي چې چا قسم وکړو.

زه به مثلاً زید سره خبرې نه کوم بعد الوفات خبرې وشوې حنث نه لازمیږي نو دا دلیل د نفي د سماع نه دي دا د احنافو یو مشهور اصل دي هغه دا چې بناء د أَيْمَانُ په عرف باندې ده په عرف کې هغه زید لره خلک ژوندي نه وایي هغه زید لره خلک سامع د کلام نه وایي په هغه عرف باندې دا قول بناء شوې دي نه دا چې په حقیقت کې د سماع نفي ده.

دا مقدماتي کلماتو کې ما دا خبره واضحه کړه چې احد الجانب آخر لره باید ګمراه و نه وایي چې د نافیینو سره بي بي عائشه صدیقه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا موجود ده او د مثبتینو سره عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غوندې عمده اشخاص د صحابه وو موجود دي.

باقي قول د محققينو او اكثرينو دادى چې سماع الموتى ثابته ده ځكه وروسته عبارات به تاسو ته راشي چې حقه داده دا ثابت ده اختلاف يا قول د اكثرو داده چې دا ثابته ده.

نافيين د سماع الموتى په استدلال كې د قرآن عظيم الشان نه دوه آيتونه پيش كوي چې يو ايات د سورة نمل ۸۰ نمبر ايت او دويم د سورة الروم ۵۲ نمبر ايات او د دواړو مضمون قريب دي :

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ خطاب دي رحمت عالم لره يقيناً تاسو چې يې اورول نه شي كولې مړو لره.

﴿وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ﴾ او نه شي اورولي كڼو لره بلنه.

﴿إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ﴾ چې وګرځي هغوي شاه كوونكي تا لره.

﴿وَمَا أَنتَ بِهَادِي﴾ او نه يې ته هادي.

﴿الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ﴾ په هغه معنى د موصل الى المطلوب سره نفي راغلې ده.

او بل ځاى كې اثبات راځي : ﴿وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾.

﴿إِن تُسْمِعُ﴾ ته اسماع نه شي كولې.

﴿إِلَّا مَن يُؤْمِنُ﴾ مګر كولې شي هغه چا لره چې هغه ايمان لري.

﴿بِآيَاتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ﴾.

يا دويم آيت د سورة روم آيت نمبر ۵۲–۵۳:

﴿فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ۵۲ وَمَا أَنتَ بِهَادِ الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ ۵۳﴾ (الروم آيت : ۵۲–۵۳).

دغه اياتينو نه استدلال د نافيينو دي چې نبي اكرم ﷺ ته ويلې شوي دي چې ته موتى وو ته اسماع نه شي كولې دليل په څه شكل باندې نيسي اصلاً دا ايات كريمه د موتى وو متعلق نه دي د مړو متعلق نه دي نازل په دې خو اتفاق دي بيننا وبين الخصم دلته

مسئله د مړو زير بحث نه ده اصلاً كفار مراد دي او تشبيه د كفارو وركول شوې د مړو سره نو:
﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ﴾ ته اسماع نه شي كولې كفارو ته هغه كفار چې دي په شان د موتى وو دي.
نو تشبيه د كفارو وركول شوې ده د موتى وو سره هغې نه تعبير په مړو شوې دي نو دوي دلته دا قاعده جاري كوي چې هر كله تشبيه د كفارو د مړو سره وركړې شوه نو دا تشبيه ده په نفي د سماع كې او وجه د شبهي په مشبه به كې ازيد وي د مشبه نه نو ته اسماع نه شي كولې كفارو له هغه كفار چې مشابه دي له مړو سره په نفي د سماع كې بلكې وجه د شبهې په مشبه به كې ازيد وي د مشبه نه نو ګويا كې ثابته شوه چې دا مړي په نفي د سماع كې ازيد دي له كفارو نه نو مړو ته نفي د سماع تاكيدي ثابته شوه چې بالكليه هغوي نه اوري په دې طريقه د هغوي استدلال دي نو ته اسماع كفارو ته نه شي كولې هغه كفار چې دي په شان د مړو دوي دا وايي يعني په نفي د سماع كې نو كفار سماع نه شي كولې او ته ورته اسماع نه شي كولې نو بيا چې تشبيه د مړو سره شوه نو مړي خو په طريقِ اولى سماع نه شي كولې.
زاد المسير في علم التفسير جلد ۵ صفحه ۳۴ كې ددې وضاحت كوي چې دا ايت كريمه نازل حق د كفارو كې دي او تشبيه د هغوي موتى وو سره دي ايات كې مسئله د سماع الموتى د سره نه شته دي د بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها دا رايه وه دې رايه كې دا بالكل ظاهر پسې تللې ده:

**انک لا تسمع الموتى قال المفسرون هذا مثل ضربه الله للكفار فشبههم بالموتى.**

نو مشابه يې كړه كافران له مړو سره.

**قوله تعالى: وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ، إِنْ تُسْمِعُ** ته اسماع نه شي كولې.

مراد د نفي نه دلته **اسماع افهام الامن يؤمن باٰتنا.**

دا عبارت ما دې د پاره صرف نقل كړې دي چې دا ايت كريمه په حق د كفارو كې نازل دي په باره د مړو كې نه دي نازل مسئله د مړو دلته زير بحث نه ده او نه مړي مراد دي دلته كفار يادوي چې ته كفارو ته اسماع نه شي كولې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم په مقبرو بيانو نه كول چې ګنې مړو ته يې اسماع ګاني كولې چې ګنې د ايت شان نزول دا دى چې دې څه مړو ته لګيا وه ايت ورته راغې:

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ نه دي کفارو ته دعوت ورکوي او هغوي ايمان نه راوړي.

آيت راځي:

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ ته کفارو ته اسماع نه شي کولې لکه مثال د ذاکر او غافل څه شي دي مثل الحي والميت مثال يې د ژوندي او مړي دي مثال د عمر فاروق او ابو جهل څه شي دي ﴿أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ﴾ هغه چې مړ وه بيا مونږ ژوندي کړو دا عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دي نو مړ خو نه وه کنه هغه مرګ دده چې وه حالت د کفر دده وه او احياء دده چې وه حالت د اسلام دده وه.

نو استدلال د منکرينو په دغه طريقه دي چې دلته تشبيه د کفارو له مړو سره ده او وجه د شبهې مشبه به کې ازيد وي د مشبه نه خو دا تشبيه د کفارو د مړو سره په نفي د سماع کې ده دوي داسې وايي.

جواب به دا وي په طريقينو باندې يو خو دا چې تشبيه د موتی وو ده له کفارو د موتی وو سره دې آيت کريمه کې دا په نفي د سماع کې نه ده بلکې په نفي د فهم او د جواب تسليمي کې ده که ته وايي چې دا تشبيه کفارو د موتی وو سره په نفي د سماع کې ده نو معنی دا شوه:

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ ته اورول نه شي کولې کفارو لره.

هغه کافران چې سماع نه لري دوي په نفي د سماع کې په شان د موتی وو دا نفس کذب نسبت دي قرآن کريم لره ددې معنی دا شوه چې کافران ټول کاڼه دي لکه مړي چې کاڼه دي نو دا بداهتا دروغ دي کافر لکه کاڼه دي لکه مړي چې کاڼه دي نو دا بداهتاً دروغ دي کافر لکه کاڼه دي تشبيه د کفارو له مړو سره دا په نفي د سماع کې چې ورکوي کذب لازميږي مونږ ګورو چې کافران کاڼه نه دي نو دا تشبيه په نفي د سماع کې نه ده دا تشبيه ده په نفي د فهم کې او په نفي د جواب تسليمي کې لکن لا يجيبون يا لا يقدر ان يجيب قدرت نه لري چې واپس جواب درکړي او يا په نفي د فهم کې ده ته اسماع نه شي کولې کفارو لره هغه کفار چې په نفي د فهم د کلام ستا کې دي په شان د مړو نو دوي ستا د خبرې تسليم نه کوي لکه مړي ته

چې لګیا یې تسلیم نه کوي دوي ستا خبرې ته جواب تسلیمي نه درکوي لکه څنګه چې مړي ته جواب تسلیمي نه وي نو په دغه معنی باندې دا تشبیه شوې ده.

دویم دا چې دلته نفي د اسماع راغلي ده او نفي د اسماع مستلزم نفي د سماع لره نه ده.

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ﴾ ته اسماع نه شي کولې.

اَسمع يُسمع تُسمع باب د افعال دي او هغه متعدي دي نو نفي د اکرام د غیر نه مستلزم نه دي دې لره چې هغه کریم نه دي.

دلته د نفي د اسماع ده چې ته اسماع نه شي کولې نو دا دلیل ددې نه دي چې نفس سماع هغوي ته نشته ایات هغې نه ساکت دي.

دریمه دا چې ﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ﴾ خطاب نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دوي ته اسماع نه شي کولې دا خو یو مسلم حقیقت دي دا مړي په ځای پریږده مثلاً زه به تاسو ناستو خلکو کې یوه ته وایم ته خبره اوري که نه یې اوري اوري کنه تا ته دا قوه سامعه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ درکړي که خدای تعالی درکړي؟ خدای تعالی درکړې ده کنه نو تا ته دا اسماع نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه ده کړي بلکې خدای تعالی کړې ده صحیح ده ته ژوندې یې نبه اوریدل کولې شي زه ویلې شم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تا ته اسماع نه ده درکړي بلکې خالق درکړي.

نو دا دلیل ددې شو چې ته سماع نه لري؟ نفي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه د اسماع شوې ده دلیل د نفي د سماع خو نه دي کنه ته اسماع نه شي کولې خالق سماع ورکولې شي ته یې نه شي کولې نو دا خو په ژوندو کې هم قوه سامعه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دي درکړې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه نفي د اسماع په ژوندو کې هم کیدې شي پاتې خو لا مړي شول بلکې ده ته دا قوه چې ورکوي پیغمبران یې نه ورکوي خالق یې ورکوي ورته:

﴿إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ﴾ ته اسماع نه شي کولې.

وروسته تسلیم خپله کوي:

﴿إِن تُسْمِعُ﴾ ته اسماع نه شي کولې.

﴿إِلَّا مَن يُؤْمِنُ﴾ څوک چې مؤمن وي هغه ته بیا اسماع کولې شي.

یعنې معنی دا ستا دا خبرې په ﴿مَن يُؤْمِنُ﴾ باندې اثر کوي هغوي ترې فهم اخلي هغوي جواب تسليمي درکوي او کوم چې کفار او موتی دي په شان د موتی وو دي هغوي ترې فهم نه اخلي هغوي جواب تسليمي نه درکوي زما دغو جوابونو ته تفاسير اشاره کوي :

التفسير المنير للزحيلي جلد ۲۰ صفحه ۳۱ :

والمراد من نفي الاسماع للموتى الاسماع الذي ان يعقبه اجابة وتفاعل وتفاهم .

نفي د هغه اسماع راغلې ده کوم اسماع پسې چې وروسته جواب وي او فهم وي ته هغه اسماع نه شي کولې چې هغوي ترې فهم واخلي او تا ته جواب تسليمي درکړي .

فلا يعارضه ثبوت السماع من جانبهم . دا معارض نه شو د هغه آحاديثو سره چې هغې نه ثابتيږي ثبوت د سماع د جانبه د مړو نه هغې سره هيڅ معارضه د آيت نشته دي لکه حديث کې راځي :

ان الميت يسمع قرع نعال المشيعين اذا انصرفوا عنه .

نو ددې او هغې په مينځ کې څه مخالفت نشته دي دلته نفي د اسماع ده هلته ثبوت د سماع دي .

## دلائل د مثبتينو د سماع الموتى :

مخکې دلائل د نافيينو وه .

دليل د مثبتينو لپاره روايات د بخاري وغيره کتبو دي .

**اول دليل :** صحيح البخاري جلد ۵ صفحه ۹۷ معرب بيروت چاپ پاکستان چاپ باب الجنائز صفحه ٦٨ :

عن ابي طلحة ان نبي الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امر يوم بدر باربعة وعشرين رجلاً من صناديد قريش .

ورځ د بدر کې امر وکړو ۲۴ کسان د مشرانو د قريشو نه چې مړه پراته وه د بدر ميدان کې .

فقذفوا . واچولې شول .

في طوي من اطواء بدر. په يو کوهي کې له کوهيانو د بدر نه.

خبيث مخبث. هغوي ته اشاره ده.

وکان اذا ظهر على قوم اقام بالعرصة ثلاث ليال. د رحمت عالم طرز او طريق دا وه کوم قوم باندې به چې غالبه شو د هغوي د وړاندې ميدان کې به يې درې شپې تيرولې داد زړه ور انسان کار وي.

فلما کان ببدر اليوم الثالث. دريمه ورځ چې راغله.

امر براحلته فشد عليها رحلها. امر يې وکړو چې ما ته اوښ برابر کړي زه ځم د جنګ ميدان ته.

ثم مشى واتبعه اصحابه وقالوا ما نرى ينطلق الا لبعض حاجة. زمونږ ګمان دا وه چې دې روان دي بعضې حاجت لره.

حتى قام على شفة الركي. په غاړه د هغه کوهي باندې ودريده.

فجعل يناديهم. آواز کوي.

باسمائهم. د هغوي نومونه اخلي.

واسماء آبائهم يا فلان بن فلان ويا فلان بن فلان ايسركم انكم اطعتم الله ورسوله.

آيا اوس به خوشحال نه وي که تاسو تابعداري د خدای تعالى او د نبي عليه السلام کړې وي.

فانا قد وجدنا ما وعدنا ربنا حقاً.

مونږ سره وعده د امداد او د نصرت وه هغه مونږ حقه بيا مونده.

فهل وجدتم ما وعد ربكم حقاً.

تاسو مونده کړه وعده د عذاب چې تاسو سره وعده حقه شوې وه خطاب مړو ته کوي.

قال. راوي وايي.

فقال عمر يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ما تكلم من اجساد لا ارواح لها.

خبرې کوي جسدونو سره چې روح نه لري .

فقال رسول الله ﷺ والذي نفس محمد بيده ما أنتم بأسمع لما أقول منهم . نه يې تاسې أسمع هغه څه لره چې زه قول کوم دوي ته منهم له دوي نه تاسو ددوي نه أسمع نه يې بلکې دوي در نه أسمع دي .

بل حديث به وروسته راشي هغې کې دا الفاظ زيات دي :

ولكن لا يقدر ان يجيب . قدرت نه لري چې جواب راکړي باقي دوي أسمع دي تاسو أسمع نه يې له اقوالو زما لره بلکې دوي أسمع دي له تاسو نه له وفات سره قوات د حس چې دي دا تيزېږي کمزوري کيږي نه يو عالم بيان کوه نو هغه وويل حقيقت د موت خو نه تاسو څکلي او نه ما چې سره پوه شو څه حالات دي خو :

النوم اخ الموت . خوب د مرګ ورور او هم مثل دي .

نو ګويا کې خوب نيم مرګ دي په دې کې حواس ظاهره مړه شي او حواس باطنه فعال وي کار کوي نو وايي راځي چې دې خوب ته لاړ شو چې دې کې حواس کار کوي او که نه يې کوي تيزېږي او که کمزورې کيږي بيا يې مثال ورکړو وايي مقبره کې مړي د دنيا هر قسم کامرې دي پسې راوړي نه شي کشف کولې هر څومره کوشش چې وکړي وايي چې کله سړي ويده شي هغه مړ پلار يا ورور په خوب کې ګوري د هغوي سره ملاقات کوي د دنيا يوه آله يې هم نه را اخلي او خوب نه بعد يې دا نظر دومره تيز شي چې هغه مړي بيا هم ګوري ملاقات ورسره کوي .

دا دليل ددې دي چې دا خوب کې ستا دا نظر تيز شو د دنيا نه کم نه شو دنيا کې دې ستر ګو هلته کار نه کوه او د خوب نه بعد يې کار شروع کړ وايي چې دا نيم مرګ چې خوب دي دلته نظر دومره تيز شو نو هغه پوره مرګ کې به لا څومره تيز وي هلته نظر و نه نور هم تيز شي دا حجابات مينځ کې ختم شي دا دې دنيا د پاره وي .

ما أنتم بأسمع لما أقول منهم . نه يې تاسو أسمع اقوالو زما لره ددوي نه بلکه دوي أسمع دي .

دا قوي دليل د مثبتينو دي نافيين به تاويلات كوي چې دا خو معجزه وه د نبي عليه السلام او تاسو أسمع لما أقول ، زه چې څه وايمه دا دې وخت پورې خاص وه نو دا خو داسې تقديرات دي چې خپلې رايې ته حديث رابنكل دي چون چرا په يو حديث کې خو څه گران كار نه دي دليل پيش كوه او د هغې نه يو جواب كوه خو جواب بايد معقول وي په دې الفاظو کې كوم ځاى کې تخصيص تر ذات المصطفى موجود دي په كوم ځاى کې اشاره معجزې لره ده .

مطلب د حديث دا دى چې زه تاسو ته هم خبرې كوم نن مې دوي ته وكړي خو تاسو أسمع اقوالو زما لره منهم نه يې تاسو هم زما خبرې اوري دوي يې هم اوري خو تاسو ترې أسمع نه يې بلكې دوي أسمع دي او په دې باندې د نافيينو د هغه قول رد هم وشو دې حديث کې دا حديث ما دې پاره را واخيست اگر كه دې کې الفاظ كم هم دي چې :

لا يقدر أن يجيب . قدرت نه لري چې جواب وركړي .

بخاري بل ځاى کې هغه روايت ذكر كړې دي ما هغه را وانخيست دا مې را واخيست ځكه چې په دې کې څه الفاظ موجود دي چې نبي عليه السلام بعد ثلاثة ايام راغې دوي ته نافيين دا وايي چې څنگه مړ شي او دفن شي دې وخت کې چې فرشتې راشي وايي دې وخت کې دوي اوري بيا يې وروسته نه اوري نو دلته ثلاثة ايام تير شوې دي نكير منكر فرشتې ترې لا پخوا تللې دي هغه ترې نه تلې دي او دوي ته سماع ثابته ده .

(۲) دوهم روايت : صحيح البخاري جلد ۲ صفحه ۱۱۳ باب الجنائز کې دا حديث مذكور دي حضرت انس رضي الله عنه راوي دي :

عن النبي صلى الله عليه وسلم قال العبد اذا وضع في قبره . نبي اكرم صلى الله عليه وسلم فرمائي بنده چې كله كيخودلې شي قبر کې .

وتولي . خلك ترې وگرځي .

وذهب اصحابه حتى انه ليسمع قرع نعالهم . دې اوري هغه ټكارې د نعل د دوي دوي اوس څه وايي د پنو غږ اوري د بل شي نه اوري نو دې کې كله دا راغلې چې بل نه اوري خو اشاره دې ته ده چې د پنو ترپاريو كمزورې اواز دي چې څوك په غوږ و ډير كمزورې نه وي

هغه یې اوري نو دا مړي دومره اسمع دي چې هغه کشارې هم اوري چې خلک واپس راروان وي دلته چې څوک دا تاویل کوي چې د پښو ترپار اوري بل شي نه اوري.

دا بعینه داسې تاویل دي لکه یو سړي ووایي نعل خو نعلینو ته وایي نعال ځان ته یو قسم بوټ دي چې حدیث کې نعال راغلو هغه اوري او د بوټانو ترپار نه اوري د چپړو هم نه اوري ځکه حدیث کې نعال راغلي د حدیث دا مقصد دي چې دوي أسمع دي حتی دوي چې دې هغه نعال د مشیعینو ډیر کمزورې دي هغه هم دوي اوري.

اتاه ملکان فاقعداه فیقولان له. راشي ملکان ورته کیني له ده سره وایي ده ته.

ما کنت تقول في هذا الرجل محمد ﷺ. د نبي علیه السلام متعلق تپوس ترې نه کیږي دا حدیث بخاري کې څو ځایه مکرر دي.

بل ځای الفاظ دا دی:

ان المیت لیسمع قرع نعال المشیعین له اذا انصرفوا عنه.

هلته دا الفاظ دي یقیناً دا مړي اوري ترپارې.

نعال المشیعین له اذا انصرفوا عنه. دا خلک چې ترې راوګرځي دا اوري.

(۲) دریم روایت: عون المعبود شرح سنن ابي داؤد جلد ۳ صفحه ۳۷۲ کې ذکر کړي.

ابن عبدالبر تمهید کې هم را اخیستې:

وقد صح عن ابن عباس مرفوعاً ما من احد یمر علی قبر اخیه المؤمن. نشته یو کس چې هغه د یو مؤمن ورور په قبر مرور وکړي.

دویم روایت کې راځي:

بقبر الرجل کان یعرفه في الدنیا. چې دنیا کې پیژنده.

فیسلم علیه. سلام پرې واچوي.

الا عرفه. مګر هغه یې وپیژني.

ورد علیه. رد پرې وکړي وعلیک ورته ووایي.

دلیل د سماع دي ظاهراً ځکه چې هغه دده سلام وانه وري نو بیا څه پوه شو چې په ما چا سلام اچولې نو رد ځنګه وکړي نو دا دلیل د سماع دي چې هغوي یې اوري ځکه جواب ورکوي .

(۴) څلورم روایت : روایت د الموطأ دي جلد ۱ صفحه ۲۸ :

وحدثني عن مالك عن العلاء بن عبدالرحمن عن ابیه عن ابي هریرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خرج الی المقبرة فقال السلام علیکم دار قوم مؤمنین وانا ان شاء الله بکم لاحقون .

دا روایت مسلم کې هم شته ټول کتب الحدیث دا را اخلي چې کله مقبرې ته څوک ځي نو مرده ګانو سره به یې د سلام طرز او طریق څه وي نو دا الفاظ درته ښایي :

السلام علیکم دار قوم مؤمنین وانا ان شاء الله بکم لاحقون .

نو السلام علیکم دا هم خطاب دي ان شاء الله بکم دا هم خطاب دي دا ټول خطابات داسې خطابات دي چې هغه صاحب به یې اوري که نه یې اوري بیا ددې سلام څه فائده شوه چې هغه یې اوري نه .

د داسې مسئله ده چې ابن قیم او ابن تیمیه هغه هم له دوي نه په کې اوو ښتي دي نور خو هره مسئله کې ددوي مقتدیان هغه دواړه وي .

خو په دې مسئله کې ابن قیم هم قائل د سماع الموتی دي داد هغه کتاب دي الروح ددې په صفحه ۷ باندې :

المسئلة الاولی وهي هل تعرف الاموات زیارة الاحیاء وسلامهم ام لا ؟

مړي د ژوندو په ملاقات باندې دا ژوندي پيژني او که نه او سلام یې اوري او که نه.

دې کې بیا حدیث شروع کوي اول حدیث هم دا ذکر کوي :

ما من مسلم یمر علی قبر اخیه کان یعرفه في الدنیا فیسلم علیه الا رد الله علیه روحه حتی یرد عَلَيْهِ السَّلَامُ. سلام جواب واپس کړي .

فهذا نص في انه یعرفه بعینه ، ویرد عَلَيْهِ السَّلَامُ.

داد ابن قیم قول دي دا نص په دې کې دي چې دا يې بعنيه وپيژني چې هغه فلاني راغلې دي او وعليك ورته وايي .

بيا حديث ذكر كوي :

وقد شرع النبي ﷺ لأمته اذا سلموا على أهل القبور ان يسلموا عليهم سلام من يخاطبونه .

شریعت دادی داسې سلام وکړه خطاب په کې کوي نو ورته به وايي السلام عليكم دار قوم مؤمنين چې دا روايت د مسلم نسائي ابن ماجه مسند ابن حنبل د ټولو دي .

بيا ابن قيم وايي :

وهذا خطاب لمن يسمع ويعقل . دا خطاب هغه چا ته کيږي چې اوري او پوهيږي هم .

ولولا ذلك لكان هذا الخطاب بمنزلة خطاب المعدوم والجماد . که داسې نه وې نو دا خو بيا خطاب جماد ته شو يا معدوم ته .

يو څوک نشته او ته لګيا يې سلامونه اچوي دا خو د ليونو كار دي او يا سړي كاڼي ته لګيا دي سلام پرې اچوي يا يې بوټي ته اچوي .

دې نه بعد بيا اجماع نقلوي :

والسلف مجموعون على هذا وقد تواترت الاثار عنهم بأن الميت يعرف زيارة الحي له ويستبشروا به .

د سلفو اجماع په دې باندې ده چې مړي د ژوندو په زيارت پوهيږي چې سلام واچوي وعليك وايي ورته په دې کې تواتر د آثارو دي .

(٥) پنځم روایت : ابن ابي الدنيا د كتاب القبور نه الروح ذكر كوي په دغه مذكوره صفحه ۷ باندې چې د ابن قيم تصنيف دي :

حدثنا محمد بن عون حدثنا يحيى بن يمان عن عبدالله بن سمعان عن زيد بن اسلم عن عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ : ما من رجل يزور قبر اخيه.

نشته یو سړي چې زيارت قبر د ورور کوي .

ويجلس عنده الا استأنس به . هغه پرې ألفت حاصلوي .

ورد عليه حتى يقوم . چې سلام اچوي وعليک وايي تر څو چې ترې پاڅي .

(٦) شپږم روایت : فتح الباري دابن رجب حنبلي جلد ۲ صفحه ۵۲۹ کې ذکر کړې دي :

وروي ابو الشيخ الاصبهاني (في كتاب ثواب الاعمال) بأسناد له عن عبيد بن مرزوق قال

كانت بالمدينة امرأة . مدينه منوره کې يوه زنانه وه .

يقال لها ام محجن . دا يې نوم وه .

تقم المسجد . چې هغې به جارو کوه مسجد لره .

فماتت . هغه وفات شوه .

فلم يعلم بها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پرې پوه نه شو چا ورته ونه ويل .

فمر على قبرها . تير شو په قبر د هغې باندې .

فقال ما هذا القبر ؟ دا قبر د چا دي .

قالوا ام محجن فقال : التي كانت تقم المسجد ؟ هغه جو مات به يې چې جارو کوه هغه .

قالوا نعم فصف الناس وصلى عليها . صفونه يې جوړ کړو مونځ د جنازې يې پرې وکړو .

ثم قال . بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې بي بي ته مخاطب شو .

اى العمل وجدت أفضل ؟ اي بي بي کوم يو عمل دې افضل بيامونده .

قالوا يا رسول الله أتسمع ؟ دا يې اوري .

قال ما انتم باسمع منها . تاسو ددې نه أسمع نه يې .

هغه څوک چې د بخاري په روايت کې دا تاويل کوي چې :

ما انتم بأسمع لما أقول منه .

جواب دا کوي چې دا معجزه وه لما اقول نه يې ثابتوي چې زما قول کې دوي تاسو نه

أسمع دي د هر چا قول کې خو نه دي نو دلته خو لفظ د لما أقول هم نشته دي .

ما أنتم بأسمع منها . نه يې تاسو أسمع ددې نه بلکې دا بي بي أسمع ده له تاسو نه .

فذكر انها اجابته قم المسجد .

وايي دا روايت هم شته دي په کې چې بي بي آواز ورکړو ورته چې د جومات جارو کول په عباداتو کې افضل وه دې چونکې دا عمل زيات کړې وه ثمره يې وليدله .

دا واقعه فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۱ صفحه ۱۱۳ کې هم ذکر کړې.

(۷) اوم روايت : المعجم الكبير للطبراني جلد ۱۵ صفحه ۲۹۶ :

حدثنا عمرو بن حفص السدوسي حدثنا ابو بلال الاشعري حدثنا يحيى بن العلاء عن عبد الاعلى بن عبد الله بن ابي فروة عن قطن بن وهب عن عبد الله بن عمير قال مر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ على مصعب بن عمير حين رجع من أُحد .

واپسي کې أحد نه چې راتلو مصعب بن عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد وه هغه ته ودريدلو .

فوقف عليه وعلى اصحابه . شهيدان وه .

فقال اشهد انكم احياء عند الله . گواهي کوم چې تاسو عند الله ژوندي يې .

فردوهم وصلوا عليهم . د جنازې مونځونه يې پرې وکړه .

فوالذي نفس محمد بيده لا يسلم عليهم الا ردوا عليه الى يوم القيامة . سلام به نه اچوي په دوي باندې يو کس مگر دوي به ورته وعليك وايي تر ورځې دقيامت پورې .

(۸) اتم روايت : المنامات د ابن ابي الدنيا را اخيستې جلد ۱ صفحه ۱۳ د عبد الرحمن بن ابي ليلى روايت دي .

قال : وايي .

الروح بيد ملك . انسان چې مړ شي روح يې په لاس د يو فرشتې کې وي .

يمشي مع الجنازة . جنازې سره روان يې .

يقول . وايي دا فرشتې دي انسان ته .

أسمع ما يقال لك . واوره چې څه ستا باره کې اوریدل کیږي ؟

نو دې یې اوري کنه څوک یې تعریف کوي څوک یې بې ځایه صفت کوي نو په هغې یې بیا رتې دا بې ځایه صفت لکه مړ شو خو دا قطب دوران وه یا دا غوث جهان وه دا قیوم زمان وه نو هغه چې دې مقام والا نه وي دا فرښته ورته وایي :

أسمع ما يقال لك . واوره څه درته وایي هغه چې ویلې شي تا لره نو دا یې اوري ځکه ورته وایي :

فاذا بلغ حضرته دفنه معه . چې کله لحد ته ورسیږي روح ورسره دفن کړي .

شرح الصدور بشرح حال الموتى والقبور امام سیوطي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۱ صفحه ۱۰۱ دا روایت ذکر کړې دي .

اهوال القبور جلد ۱ صفحه ۱۳۶ کې هم دا روای تذکر کړې دي .

دغه اته روایت سماع ثابتوي موتى وو لره دې نه بعد د مفسرينو چند اقوال دي تائيداً.

## دسماع په رابطه د مفسرينو اقوال :

روح المعاني جلد ۱۱ صفحه ۵۵ پوره تحقیق یې په دغه صفحه کړې دي او دا ټول احادیث یې ذکر کړې دي او پوره تحقیق سره یې دا مسئله ذکر کړې ده او په آخره کې وایي حقه دا ده چې سماع الموتى ثابته ده ، د جانبینو دلائل د جانبینو نه جوابات دا ټول یې ذکر کړې دي .

وذهبت طوائف من اهل العلم الى سماعهم في الجملة . يوه ډله د علماء ذهاب کوي سماع د موتى وو لره .

وقال ابن عبد البر ان الاکثرين على ذلك . اکثر علماء په دې دي .

وهو اختيار ابن جرير الطبري . دغه رايه چې سماع موتى ثابتوي اختيار مذهب د ابن جرير الطبري دي .

وكذا ذكر ابن قتيبة وغيره .

دا رنګې اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن جلد ٦ صفحه ۱۲۹ :

ان سماع الموتی ثبت عن النبي صلی الله علیه وسلم في احادیث متعددة ثبوتاً . د مړو سماع د نبي علیه السلام نه په ډیرو احادیثو ثابته ده دغه روایاتو ته اشاره ده .

لا مطعن فیه . چې څه طعنه هم پرې نشته .

ولم یذکر صلی الله علیه وسلم أن ذلك خاص بانسان ولا بوقت . که دا څوک وایي چې روایت د بخاري خاص تر نبي علیه السلام وه د هغه اقوال یې اوریدل د بل نه اوري که دا څوک وایي چې :

ان المیت یسمع قرع نعال المشیعین . دا خاص دي تر دغه وخته پورې وروسته یې نه اوري نو دې وایي :

ولم یذکر صلی الله علیه وسلم ان ذلك خاص بانسان ولا بوقت . دې تقیداتو ته څه ضرورت نشته .

دا رنګې الفجر الساطع الزرهوني شرح البخاري جلد ۴ صفحه ۱۸ دې کې تاویلونه ذکر کوي .

وقال السهیلي : اذا جاز ان یکونوا في تلك الحالة عالمین جاز ان یکونوا سامعین . بي بي عائشې ته چې چا دا حدیث پیش کړې وه نو هغې ترې نه تاویل دا کړې وه چې هغلته نبي علیه السلام أسمع نه دي ویلې عالمین یې ورته ویلې دوي عالمین دي ستاسې نه هغه الفاظ داسې دي نو دوي ترجیح روایت د عائشې بي بي ته ورکوي لیکن محدثین وایي چې عائشه بي بي دلته موجوده نه وه او دا نور راویان عمر فاروق رضي الله عنه دي موجود دي روایت د عائشې بي بي ته څنګه ترجیح ورکول کیږي په روایت د عمر فاروق رضي الله عنه هغه خپله اوریدلې عائشې بي بي د بل چا نه اوریدلي نو هلته لفظ دا دی :

ما انتم بأسمع . بأعلم نه دي بأسمع دي .

سهیلي جواب کوي که د عائشې بي بي قول ته مونږ لاړ شو چې :

ما انتم اعلم . دوي عالمین دي سامعین نه دي عالمین دي .

اذا جاز ان یکونوا في تلك الحالة عالمین جاز ان یکونوا سامعین . چې عالمین شول سامعین په خپله دي چې سړي پوه شي نو پوهه خو وروسته د سماع نه راځي یو څوک چې

خبره وانه وري پوه به په څه شي نو سهيلي د عائشې بي بي د قول جواب کوي اول خو يې بنه تفصيل کړې او ويلې دي چې د عائشې بي بي قول نه د عمر فاروق رضي الله عنه قول ته ځکه ترجيح ده چې هغه موجود ده په دې محضر او دا عائشه بي بي نه وه د بل چا نه نقل قول کوي نو هغه ته ترجيح ده او روايت دواړه بخاري را اخيستې دي د عائشې بي بي يې هم را اخيستې دي د عمر فاروق رضي الله عنه يې هم را اخيستې .

بيا دويم جواب دا کوي څه د دغه حال کې عالمين خو عائشې بي بي هم منلې دي چې دا خو يې ويلې دي نو چې عالمين شول .

جاز ان يكونوا سامعين واما استدلالها بالآيتين . که عائشه بي بي د آياتينو نه استدلال کوي .

إنك لا تسمع الموتى فاجيب عنه باجوبة احدهما ما سبق عن قتادة ان الله تعالى احياهم حتى اسمعهم .

خدای تعالی ژوندي کړل وروايي رول .

قال مغلطاي ، على تأويل قتادة فقهاء الامة وجماعة اهل السنة وعلى ذلك تأوله عبد الله بن عمر وهو راوي الحديث .

ثانيها ما ذكره المصنف هنا عن عروة ان محل نفي سماعهم حين استقرارهم في النار لا قبل ذلك .

کله چې دوي مستقر په اور کې وي هلته يې نه اوري مخکې د هغې نه يې اوري .

ثالثها ما قاله الاسماعيلي ان اسماعهم اي ابلاغ صوت النبي صلى الله عليه وسلم لهم انما كان من الله لا من النبي صلى الله عليه وسلم .

دې ته ما مخکې اشاره کړې وه نبي عليه السلام نه نفي شوې ده ابلاغ دې نه کوي خدای تعالی يې کوي .

هو كقوله تعالى : ﴿أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ﴾ اى الله هو يهدي ويوفق ويوصل الموعظة الى اذان القلوب لا انت .

رابعها ما قاله السهيلي ايضاً واوضحه ابن حجر ان المراد بالموتى و بمن في القبور في الايتين الكفار الاحياء مجازا شبهوا بالموتى في عدم انتفاعهم بما يسمعون اى أنك لا تسمع من هم في حال الموتى او في حال من سكن القبور وعلى هذا لا يبقى في الآية دليل على ما نفته عائشة رضي الله عنها أصلاً.

داد مړو خبره بيخي ده نه داد كفارو خبره كوي.

دارنګې اكمال المعلم شرح صحيح مسلم للقاضي عياض جلد ۳ صفحه ۲۰۳:

قد جاء الكلام على سماع الموتى اخر الكتاب ايضاً والصواب ما اثبتناه. تفصيل كوي ټول قاضي عياض صاحب نو بيا آخره کې وايي حقه داده:

ما اثبتناه.

هغه چې سماع الموتی مونږ ثابته کړه دغه حقه ده.

دارنګې اكمال المعلم شرح صحيح مسلم للقاضي عياض جلد ۸ صفحه ۲۰۴:

قال القاضي عياض قال والذي يحمل عليه سماعهم هو ما يحمل عليه سماع الموتى في احاديث عذاب القبر وفتنته التي لا مدفع فيها.

داد عذاب قبر متعلق چې څومره روايات دي دا ټول دلائل د سماع دي چې هغې د پاره هيڅ دفاع نه کيږي.

وذلك باحيائهم أو إحياء جزء منهم د حياء جزء منهم يعقلون به ويسمعون.

يا يې ټول ژوندي کړي يا يې څه حصه ژوندي کړي چې پوه هم شي پرې اوري يې هم.

ويجيبون في الوقت الذي يريده الله تعالى.

كله چې د خداى تعالى خوښه وي هغه وخت کې جواب هم ورکوي بيا رد د سلام كوي.

دارنګې شرح النووي على مسلم جلد ۹ صفحه ۲۵۳:

قال المازري قال بعض الناس الميت يسمع عملاً بظاهر هذا الحديث ثم انكره المازري وادعى ان هذا خاص في هؤلاء ورد عليه القاضي عياض.

ويلې دي چې دا هغې پورې خاص دي او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خبرې اوريدلې او قاضي عياض پرې رد کړې دي.

وقال يحمل سماعهم على ما يحمل عليه سماع الموتى في احاديث عذاب القبر وفتنة التي لامدفع لها.

وذلك باحيائهم او احياء جزء منهم يعقلون به ويسمعون في الوقت الذي يريد الله.

هذا كلام القاضي وهو الظاهر المختار الذي يقتضيه احاديث السلام على القبور.

داد امام نووي رَحِمَهُ اللَّهُ خپل قول شو دغه سماع الموتى چې ثابته ده دا ظاهره ده دغه مختار قول دي دغه مقتضى ده احاديثو د سلام دي سلام چې اچوي دليل د سماع وي که سماع نه واي نو سلام څه د پاره وو بيا.

## د ديوبند د علماو اقوال په دغه مسئله :

العرف الشذي للكشميري جلد ۳ صفحه ۴۴۱، السلام عليكم دار قوم مؤمنين ددې شرحه کوي :

ظاهر حديث الباب وغيره من كثير من الاحاديث يدل على سماع الموتى. دا حديث او دغه شان ډير احاديث دې دلالت کوي په سماع الموتى باندې.

واشتهر على ألسنة الناس ان الموتى ليس لهم سماع عند ابي حنيفة. د خلکو په ژبه مشهوره شوې ده چې دا مړو لره سماع نشته په نزد د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ باندې.

دې اوس جواب کوي :

وصنف ملا علي القاري رسالة وذكر فيها ان المشهور ليس له اصل من الأئمة اصلاً. مشهوره داده چې د امامانو نه دې کې څه اصل نه دي موجود چې امام صاحب ګنې دا قول کړې.

بل أخذ هذا من مسألة في باب الأيمان. قسم کې چې کومه مسئله ده ما مخکې ذکر کړه.

انه اذا حلف انه لا يتكلم مع فلان فمات الرجل فتكلم معه على قبره ميتاً لا يحنث.

دې نه يې استدلال کړې دي :

اقول . شاه انور شاه صاحب وايي زه جواب کوم .

ان وجه عدم الحنث ان مبني الأيمان على العرف واهل العرف لا يعلمون ان الموتى تسمع.

عرف کې دا معروف نه ده چې مړي څه اوري .

والمحقق . تحقيق داده .

ان ابا حنيفة لا ينكر سمع الاموات . هغه د سماع الموتی منکر نه دي .

وان خالف ابن الهمام . اګر که په احنافو کې ابن همام مخالف دي .

وقال ان الموتى لا تسمع وان ذخيرة الحديث تدل على سمع الموتى وقال الشيخ ان الموتى لا تسمع ويستثنى منه سمع قرع النعال والسلام عليكم .

دارنګې اتحاف القاري جلد ۴ صفحه ۱۷ :

وقال السهيلي عائشة لم تحضر وغيرها ممن حضر أحفظ للفظه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ .

بي بي عائشه موجوده نه وه نور موجود وه هغه چې لا يعلمون وايي يا لفظ د ما انتم باعلم وايي او هغوي باسمع وايي د نورو قول ته اعتبار دي .

وقد قالوا . نور صحابه روايت دا کوي .

يارسول الله اتخاطب قوما قد جيفوا . د جيفوا معنى اى صاروا جيفا فقال ما انتم باسمع لما اقول منهم واما نفيها سماع الموتى واثباتها العلم لهم فجوابه ان العلم لا يمنع من السماع .

علم خو مانع د سماع نه دي بلکې مثبت د سماع دي .

قاله البيهقي . دا قول امام بيهقي کړې دي .

دارنګې شرح بلوغ المرام صفحه ۱۲۳ :

فاذا كان بصفة عامة لا يعرف الاسماء سلم عليهم بصفة الاسلام .

که يو عام مړي وي که نوم ورته ياد نه وي نوم دې نه اخلي .

دار قوم مسلمين يا مؤمنين دې ووايي .

اذ الموتی یسمعون . څکه مړي خبره اوري .

دارنګې النافع الکبیر د عبد الحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۱ صفحه ۲۷۲ :

والکلام قد وجهه اکثر الشراح بان الکلام ما یخاطب به الأفهام والأسماع وهو غیر متصور في المیت وفهم منه بعض أصحاب الفتاوی انه مبني علی عدم سماع الموتی فنسبوه الی القدماء ومن ثم اشتهر بین العوام ان عند الحنفیة لا سماع للموتی والحق انهم بریئون عن ذلك . کما حققه ابن الهمام وغیره .

دا هغه مخکنې خبرې ته اشاره ده .

والمسئلة التي نحن فیها لیست مبنیة علیه بل علی ان الکلام والخطاب في العرف انما یطلق علی الخطاب مع الحي ومع المیت لا یعرف کلاماً والأیمان مبنیة علی العرف فلذا لا یحنث بالکلام مع المیت اذا حلف لا یکلمه .

وکیف ینکر قدماء اصحابنا سماع الموتی . څنګه به زمونږ مشران اماما ن انکار وکړي د سماع موتی نه .

مع ظهور النصوص الدالة علیه واجماع اکثر الصحابة علیه . نصوص پرې دال دي اکثر صحابه پرې راغوند دي .

وقد انکرته عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لکن قد زارت قبر اخیه عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . دا ن خپل ورور عبد الرحمن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زیارت ته تللې وه .

وخاطبت معه . او خبرې یې ورسره وکړي .

کما هو مروي في جامع الترمذي وغیره . هغه خبرې یې داوي ورته اودریدله وایي د جنازې وخت کې نه ومه که وایي نو نه به وم درته راغلې خو د جنازې وخت کې نه وم اوس درته راغلمه خپل ورور سره خبرې کوي دا مخاطبه شوه په خبرو کې .

فعلم انها رجعت الی السماع . معلومه شوه چې دې رجوع سماع ته کړې که ددې اوس هم دا عقیده وایي چې زما ورور دا خبرې نه اوري بیا یې دا خبرې ولې کولې ورته چا سره یې

خبرې کولې خپل ورور سره يې خطاب کړې دي .

والعقل ايضاً يوافق السماع فان السامع والفاهم انما هو الروح وهو لا يفني بالموت وفناء البدن لا يقدح في ذلك ولعلمي قد ينكشف حقية هذا الامر لمنكري السماع بعد موتهم وان طال انكارهم في حياتهم .

آخره کې ښه غصه شوې واي زما دې په خپل علم قسم وي چې حقيقت ددې کار به منکرينو د سماع ته له مرګ نه وروسته ښه ښکاره شي اګر که په دې ژوند کې يې ډير اوږد انکار د سماع الموتی نه کړې دي .

نو بعضې خلک د عائشې بي بي رجوع د دغه ځای نه ثابتوي چې دې ورور خپل عبد الرحمن سره خطاب کړې دي او چې نه يې اوريدلو ولې خطاب کولو چې په پوهيدو ولې خطاب کولو جماد ته خلک خبرې نه کوي لرګي ته چې څوک خبرې کوي او هغه پرې نه پوهيږي داد عقلاء نه ، نه وي خو چونکې مسئله د ابتداء نه نزاعي ده د صحابه کرامو د زمانې نه په کې اختلاف شوې دي .

او ما زير بحث کړه چې عقول د عوامو هغه حق مسئلې ته ذهاب راشي او د جمهورو رأي ته چې سماع الموتی ثابته ده .

پاتې شوه دا مسئله چې نافيين بالکلية سماع نه مني او ديخوا بيا څه غلاط مونږ کې هم شته دي چې هغوي د سماع الموتی نه دا جوړ کړل چې څوک چيرته اولياء ته چغې وهي نو دا ډارک اوري د دغه نظر غلط دي سماع الموتی نفس الامر کې ثابته ده بعيد د مرده نه هم امکان لري که کراماً هغه ته خدای تعالی دا ورسوي هغه ستا حق کې دعاء وکړي مشکل حل شي نو د هغې معنی دا نه ده چې دنيا کې څومره چغې دي مرده ګان اوري چې څوک چيره چغه وهي نو پير بابا يې اوري دغه اجازت عوامو ته مه ورکوي چې هغوي دې دې ځای نه چغې وهي يا پير بابا را ورسيږي او يا زما مشکل حل کړي ها خواص د صوفيه چې کله حال د مراقبه کې وي او يا په پوره تفکر کې وي او رابطه کې وي د خپل شيخ سره هغه نه بعضې استمدات روحي غواړي هغې ته شرک مه وايي هغه کتبو د تصوف او واقعاتو د سيرو کې معروف دي .

دليل ورباندې هغه حديث هم جوړيږي د نبي اکرم ﷺ روضې ته يو صحابي راغي.

**يا رسول الله ﷺ إستسق لأمتك فانهم قد هلكوا.**

نو چا چې داآواز کړي دا هم منکر سړي نه دي دا بلال بن حارث مديني دي صحابي دي. هغه چا ته يې چې کړې هغه رحمت اللعالمين دي او د غه شان چا نه چې يو شي ورک شي نو آواز دي وکړي په جيګ آواز باندې:

**يا عباد الله اعينوني.** د خداى بنده ګانو زما مدد وکړي.

يو روايت کې راځي:

**فان لله عبادا لا تراهم.** د خداى بنده ګان دي مونږ يې نه ګورو هغه به دا ثاروي ده ته راونيسي او راپيدا به شي.

دا روايت د مصنف ابن ابي شيبة دي په کتاب الدعاء کې مذکور دي او د دې حواله د توسل مسئله کې هم ذکر شوې او دا شان معجم الکبير د طبراني په جلد ۲ صفحه ۷۲ کې دا حديث مذکور دي چې حضرت ميمونه رضي الله عنها د نبي اکرم ﷺ سره په خدمت کې ده د شپې د تهجد وخت دي نبي عليه السلام د اودس ځاى ته لاړو اودس يې کولو بي بي خدمت کې ولاړه ده او د اودس په ځاى کې نبي عليه السلام دا آواز وکړو:

**لبيك لبيك لبيك نصرت نصرت نصرت.**

خدمت کې حاضر يمه حاضر يمه امداد به دې وشي امداد به دې وشي.

چې را بهر شو بي بي ترې نه تپوس کوي تاسو چا سره خبرې وکړي؟ وايي هاو.

**قال هذا راجز بني کعب يستصرخني.** دا د بني کعب د قبيلې راجز وه.

راجز چا ته وايي چې په ترنم کې شعرونه وايي د بني کعب د قبيلې يو شعر ويونکي وه.

**يستصرخني.** فريادي چغې يې ما ته وهلې.

نو نبي عليه السلام د لته نه امداد د هغه کړې دي نو د بعيد نه داسې څه آواز نبي عليه السلام ته يا اولياء ته خداى تعالى اورسوي بعضې اوقاتو کې دا کيدې شي دا څه بعيده نه ده دا د هغه معجزه شوه اولياء ته که د غه شان آواز ورسيږي دا به د هغوي کرامت شي بعد الوفات ثابت

دي خو ددې دا معنی نه ده کنه چې تول عمر کې چې د خدای تعالی د اوازپه ځای به ته اولیاء ته چغې وهي لکه بعضې شیعه ګان او بعضې غلاط متبعین د هغوي چې د یا الله په ځای باندې د یا فلان ولې آواز بهتر ګڼي.

دا مسئله چې سدِ باب ونه شي بیا بل طرف ته رسي داد یا علي مدد چغه د شیعه ګانو شعار دي اوس مجالسو کې به انتهائي ځان ترې ساتي زه ډیرو ځایونو کې د بریلي حضراتو جلسې ته چې لاړ شمه دا چغه په کې وهي نو بنه په نرمه یې پوه کړم چې صاحبانو داد شیعه ګانو په جلسو کې دا اوازونه کیږي زه خو تاسو پیژنم چې اهلسنت یاستي شیعه ګان نه یاستي خو یو بل سړي دلته راشي او تاسو د یا علي مدد چغې وهي هغه خو سره نه پوهیږي چې داد شیعه ګانو جلسه ده که داد اهلسنت جلسه ده نو ولې د شیعه ګانو نښې ځان کې راولي.

یو کس راته ویلي داد محبت لپاره مونږ وایو چې محبت ښکاره کوي نو د شیعه ګانو سره دا فرق وکړي چې نعره یې صدیق ووایي نعره یې عمر ووایي نعره یې عثمان ووایي څلورمه مرتبه کې نعره یې علي ته راشي نو مونږ به پوه شو چې ترتیب د خلفاء تاسې مني نو چې تاسو نعره یې تکبیر نعره یې رسالت او ډارک نعره حیدري او دا شعار هم د شیعه ګانو دي نو دا افراط او غلو دوي کوي او په دې باندې نور څه نه وي هغه خپل بابا ګان شیعه ګان خوشحاله وي په دغه ځای کې دوي سره رابطه پټه د سیاسي تنظیم د شیعه ګانو وي چې دا ونه وایي بیا په دوي هغه فنډ بندیږي هغه کوم چې دوي ته حواله وي هغه شي وربانديې بندیږي بیا شیعه ګان خفه شي چې تاسو زمونږ دا نښې ولې په مجالسو کې نه ښکاره کوي نو مقصد مې دادی چې زه د خواصو د صوفیه وو یا غیر صوفیه وو خواصو خواصو عبادو ته چې کوم آوازونه کیږي د هغې منکر نه یمه کرامتاً به یې اولیاء ته هم خدای تعالی ورورسوي وا به یې وري هغه به دوي سره امداد وکړي د امداد معنی دا چې مؤثرِ حقیقي په کې هغه نه وي خالق وي خو دې به دعاء وکړي هغه مشکل به حل شي نو دا ثابت دي نصوصو نه ترې استدلال کیږي او نبي عَلَیْہِ السَّلَامْ ته خدای تعالی ورسوي دا بعضې حالات د امت دا اوازونه فریادي دا ورته رسیږي خو دِدې دا مقصد نه دي چې دنیا کې کومه چغه ده هر ولي به یې

اوري گوري چې مونږ دا جائز کړو چې ددې ځای نه پير بابا ته چغه روا ده چې يا پير بابا راورسيږي او ما سره مدد شي او يا فلاني بابا راورسيږي ما سره مدد شي.

نو که مونږ دې ته مطلقاً او عام جائز ووايو نو اول به پير بابا ته سماع تامه کلي ثابتوو چې دنيا کې چيرته آواز دې ده ته رسي نو بيا به دا عقيده هم ساتو نو دا کومه عقيده ده نو د سماع الموتی خو دا مقصد نه دې چې چيرته آواز نه دې هغوي يې اوري.

مثال يو څوک اوس خبره اوري او ددې کس کرامت شي لکه عمر فاروق رضي الله عنه صحابه وو ته لرې آواز ورسولې وه هغوي ډير لرې وه وروايې وروله نو دې نه اوس دا ثابتيږي چې دا صحابه هغه ځای کې وه د هر چا خبرې اوريدلې دا خو نه ثابتيږي ديو وقت لپاره کرامتاً د عمر فاروق رضي الله عنه خبره هغوي واوريدله خدای تعالی په دې قادر دې د لرې نه يې وروا وروله خو دا دليل د کلي سماع خو نه شو کنه چې دا صحابه هلته په غزا کې وه او دلته صحابه وو چې څه خبرې کولې او ټولې اوريدلې د کلي سماع دليل خو نه دې نو د غه شان کلي سماع به يو ځل ثابتوي او داد هيڅا عقيده هم نه ده.

دويم دا چې علم غيب يې کلي به ثابتوي پير بابا ته چې چا ته چغه وهي علم غيب کلي به ثابتوي چې هغه د ټولې دنيا په خلکو کلي علم غيب تفصيلي لري او د هر چا په خبرو پوهيږي نو که ستا د علم غيب کلي عقيده نه وي او د سماع کلي عقيده نه وي نو دې الفاظو ته به په کوم انداز کې جواب ورکوي او څنګه به يې جائز کوي نو زنانه عوام چې کوم دا وايي يا فلاني بابا راورسيږي زما مشکل پوره کړي نو دا پوهول غواړي داد هغوي ناپوهي وي نو يو خوا دانګ دې بلخوا پړانګ دې يو خوا دې خلکو وخوړو چې انکار کوي د حقيقت د شي نه او بل خوا دې غلاطو افراطيانو داسې عقيده ترې جوړه کړه چې هغه بالکل د شيعه ګانو سره مترادفه عقيده ده نفس حقيقت د شي نه انکار مه کوي مددِ روحي کرامتاً ممکن دي شوې دي حديثونه ثابت دي.

## حکايت :

عبد القيوم باچا صاحب د قادرې شريفې پير وه ټول خلک يې پيژني خټکو پُل کې کور او خانقاه ده وفات شوې دي هغه ما ته حکايت کولو ضعيفه آخري عمر کې دي د خپل پلار مريد وه دې پلار يې د نيکه مريد وه او نيکه يې د سوات صاحب مريد وه وايي زمونږ نيکه

مونږ ته قصه کوله چې زه د حضرت سوات صاحب سره خدمت کې ومه تهجدو ته پاڅیده وایي ما ورته کوزړي ونیوله وایي دا کوزړي یې د غاړي نه ونیوه دا دیوال یې پرې اوشته وایي زه سخت ویریدمه بس په یخو اوبو یې اودس وکړو او ما دا کودړي راټول کړل وه مې ساتل میاشت یا میاشت نه کم وخت چې تیریدلو نو د هندوستان نه دده یو مرید را روان وه لاهور کې چیرته ځنګل کې او زمري پرې راغلې وه چې زمرې پرې راغلې نو هلته نه هغه آواز کړې دي حضرت سوات صاحب علیه الرحمة ته یا یې الله پاک ته آواز کړې چې دده په برکت مې خلاص کړه بس دلته حضرت سوات صاحب ته دا حالات کشف شوې دي له دې ځای نه یې پرې باندې ګوزار کړې دي وایي چې ما ځنګه سوات صاحب ته چغه وو هله وایي چې ګورمه یوه کوزړي راغله او دا زمري په دې سر پرې ولګیده زمري مړ شو او هغه کوزړې ټوټه شوه هغه مرید یې هم د کوزړې کودړي راغونه کړي.

او دلته د عبد القیوم باچا صاحب نیکه هغه هم دا راغونډ کړي وه وایي چې ما او هغه هغه تاریخ سره مقائسه کړو یو تاریخ وه همغه وخت زه دده د تهجدو په خدمت کې ولاړ وم چې دا مسئله پیښه شوه دې نه اوس انکار مه کوي چې دا نه شي کیدې مؤثرِ حقیقي په دې کې اله العالمین دي د انګریزانو جوړ شوې شي میزائیل په سلګونو کیلو میټره مزل کوي یو ځای نه بل ځای ته نو خدای تعالی خو په دې باندې کامل قدرت لري چې یو شي ددې ځای نه ډیر لرې مسافې ته ورسوي د یو ولي په لاس مؤثرِ حقیقي په کې الله پاک وي مجازي نسبت ده ته کیږي کرامت دده شي له داسې حقائقو نه انکار مه کوي هغه چا چې آواز کړې مرید دي صوفي دي شیخ دي صاحب د مراقبې او رابطې دي هغه دې خپل شیخ سره په رابطه او تصور کې دا اواز کړې دي دیخوا نه دا مدد چې شوې دي دا هم دغه شان صوفي کامل دي اتفاقي مسلم شخصیت دي پاکستان کې حضرت سوات صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ نو دا کیدې شي.

او له دې نه دا استدلال کول او عوامو ته دا نظر رو کول چې چیرته مشکل درباندې پیښیږي سوات صاحب ته چغې وهي یا شیخ عبد القادر جیلاني صاحب ته چغې وهي نو دا خو هیڅ انصاف نه دي د شیخ عبد القادر جیلاني رَحِمَهُ اللّٰهُ دغه شان کرامات مسلم دي ډیر ځای ښکاره شوې دي.

شیخ الدولة گجراتي رَحِمَهُ اللّٰهُ مزار اوس هم هلته شته دي د هغه مرید هم دي چې هغه کشتي کومه ډوبیدله او د هغه په مدد باندې خدای تعالی مؤثرِ حقیقي دي خو دده په لاسونو باندې هغه د غرق نه ایستلې شوې ده .

یوه واقعه ده د هغه په کراماتو کې مذکوره ده کراماتو نه انکار مه کوي دا حقیقت دي خو د هغې نه دا شي جوړول چې ته د مشکل په وخت کې خالق ته چغې مه وهه اوس شیخ عبد القادر جیلاني رَحِمَهُ اللّٰهُ ته چغې وهه او یا یو بل ولي ته چغې وهه نو دا هله ووهه چې علم غیب کلي ورته ثابت کړه چې دا نه وي بیا یې هغه وخت کې ووهه چې ته هغې، مراقبې ته ورسیږې او رابطې سره چې ستا پوره رابطه د هغه سره وي بیا یې هم ووهه چې دا صورتونه، نه وي نو عوامو ته د دې څیزونو اجازت شریعت نه ورکوي او هغه ذات ته د مشکل په وخت کې آواز کول په کار دي چې په تا علم کلي تفصیلي لري چې خالق دي ستا ممدِ حقیقي دي چې خالق دي ستا هره خبره اوري چې خالق دي نو هر مشکل کې مراجعه اله العالمین ته په کار ده او دا نور څیزونه چې دي دا صرف توسلات او سببونه دي لکه تفسیر کابلي کې چا سره وي هغه تاسو په ایاك نعبد وایاك نستعین باندې وګوري هغه وایي که چیرته اولیاء وغیره سبب محض ګڼلې کیږي او مؤثر خالق ګڼلې کیږي دا د دې څه مخالفت نه دي استعانت د خالق نه دي خو دا په کې اسباب جوړ شي بیا څه ناروا نه دي .

الروح یو کتاب دي د ابن قیم صاحب ډیر زیات آثاریې په دغه موضوع باندې را اخیستې دي په صفحه ۸ باندې ابن قیم په الروح کې سند سره روایت ذکر کوي :

حدثنا محمد بن حسين حدثنا يحيى بن بسطام الأصغر حدثني رجل من آل عاصم الجحدري قال رأيت عاصماً الجحدري قال رأيت عاص الجحدري في منامي بعد موته بسنتين .

دوه کاله وروسته مې خوب کې ولیده .

فقلت اليس قد مت . مړ نه یې .

قال بلى قلت فأين أنت . ورته مې ووېل نو چیرته یې .

قال انا والله في روضة من رياض الجنة . د جنت د باغیچو نه یوه باغیچه کې یمه .

انا ونفر من اصحابي. زما څه ملګري هم دي.

نجتمع كل ليلة الجمعة وصبيحتها الى بكر ابن عبد الله المزني. مونږ او زمونږ ملګري د جمعې په شپه باندې بكر ابن عبد الله مزني سره راغونديږو.

فنتلق اخباركم. مونږ يو بل سره اخبار يو بل نه اخلو.

قال قلت اجسادكم ام ارواحكم. جسدونه مو راغونديږي که روحونه.

قال هيهات بليت الأجسام. جسدونه چې کم دي هغه زاړه شوې يې.

انما تتلاق الارواح. روحونه ملاقات کوي.

قال قلت فهل تعلمون بزيارتنا اياكم. مونږ چې ستاسو زيارت ته راشو پوهيږي پرې.

قال نعم نعلم بها عشية الجمعة كلها. د جمعې په شپه خو پوهيږو.

ويوم السبت الى طلوع الشمس. او د هفتې (خالي) په ورځ تر سحر پورې يعنې د جمعې شپه او ورځ ټوله.

قال قلت كيف ذاك دون الايام كلها. نورې ورځې بيا داسې تفصيلي نه پوهيږي.

قال لفضل يوم الجمعة وعظمته. دا د جمعې ورځې فضيلت دي چې په دې ورځ مونږ پوره پوهيږو.

بيا په صفحه ۱۰ کې ليکي:

حدثني محمد حدثني احمد بن سهل حدثني رشد بن سعد عن رجل عن يزيد ابن ابي حبيب عن سليم بن عمير مر على مقبرة وهو حاقن. تش بول ورغلي وه.

قد غلبه البول فقال له بعض أصحابه لو نزلت الى هذه المقابر. دې مقبره کې کوزشه بول وکړه.

فبلت في بعضي حفرها فبكى. نو ده وژړل.

ثم قال سبحان الله والله اني لأستحي من الاموات. د مړو نه حياء راځي.

كما أستحي من الاحياء. لکه ژوندو نه چې حياء کوم.

ولولا أن الميت يشعر بذلك لما استحي منه . ابن قيم وايي که چیرته دا مړي نه پوهیدې په ژوند خلکو باندې نو دې سړي حیاء ترې ولې کوله سلیم بن عمیر رَحِمَهُ اللَّهُ ترې ولې بیا حیاء کوله .

دغه شان بل روایت ذکر کوي :

قال یزید بن هارون اخبرنا سلیمان التیمي عن ابي عثمان النهدي ان ابن ساس خرج في جنازة في یوم وعلیه ثیاب خفاف فانتهی الی قبره قال فصلیت رکعتین ثم اتکأت علیه . ما پرې تکیه وکړه .

فوالله إن قلبي لیقظان إذ سمعت صوتاً من القبر . د قبر نه آواز راغې .

الیك عني لا تؤذني . لرې شه زما نه تکلیف مه راکوه .

فانکم قوم تعملون ولا تعلمون . تاسو ژوندي داسې قوم یې چې عمل کوي خو علم یقیني نه لري .

ونحن قوم نعلم ولا نعمل . او مونږ مړي داسې قوم یو چې مونږ علم لرو پوهیږو په هر څه خو اوس عمل نه شو کولې .

ولأن یکون لي مثل رکعتیك احب الی من کذا وکذا .

که دغه دوه رکعته ما کولې شوي دا به د دومره دومره نه ما ته غوره وه دې وایي :

فهذا قد علم باتکاء الرجل علی القبر وبصلاته .

پته ولګیده چې دې سړي پرې تکیه وکړه پرې پوه شو او دا رنګې چې دلته یې مونځ وکړو نو هغه پرې پوه شو .

نور ډیر زیات روایات دي کتاب دي متعلق را اخیستې دي وړوکي کتاب دي : الروح په دغه موضوع باندې خاصتاً لګیدلې دي پیدا یې کړي او دغه موضوع د سماع الموتی یې تفصیلي چیړلې ده .

## موضوع د سماع الموتی خلاصه شوه

